# تلپاتې درد

د ژوند نیمګړې تلوسې ته !

هنري نثرونه

لیکوال : ګل رحمن رحماني




# دکتاب پېژندنه

نوم: تلپاتې درد
ليکوال: ګل رحمن حماني
کمپوزر: خپله ليکوال
خپرندوی: دصفاراډيو نشراتي څانګه
تخنيکي چارې: ګودر خپرندويه ټولنه
چاپ شمېر: زرټوکه
چاپ کال: ۱۳۸۹
انترنيت خپروونکی: اجمل اکبري

# لړلیک

ګیله
دشاعرسلګۍ
لومړۍاوښکې
نامعلومه وېره
دسیندغاړوملګری
رنګین عذاب
مساپر
برخلیک
بې وزونومرغان
درازونوپردې
دالهام پرښته
یوه پوښتنه په سلګوکې
درازونوپردې
ستاډالۍ
موراومرګ
تلپاتې مینه
وېره اوپناه
دشاعرسلګۍ
وروستۍ ډالۍ

بندي ورمې
نه هېرېدونکي شيبې
له دردونوډک خوبونه
دابديت نغمه
تلپاتې درد
اغزنه لار
تنهايي
اعتراف
دشاتوپياله
خږه ليکه
زماوينه په لحدکې
بنوونځی

# ګیله

ته ولې هرشپبه له ماڅخه ګیله منه یې ته پدې نه پوهېږې چې ددغه وړوکې خورنګین
کلي هراوسیدونکی ستانه ګیله من دی خوکله هم هغه درنې شپبې نه دي ورپه برخه شوې
چې ستا ښکلااواعظمت ترسیوري لاندې پناه واخلي اودغه تته ژبه اولړزېدلی اواز
دګیلوپه نوم ستا په حضور کې وړاندې کړي زه له هغه نیکمرغه انسانانو څخه یم چې اوس
مې په سترګوکې تاته دمخامخ کتلو ځواک پیدا شوی خوداسې وبوله چې زما
داښکوډکوسترګوهرڅاڅکی چې یوازې ته په کې ښکارې دهغوی ټولو ترجمانې دي اوتاته
دیوداسې چا داستان وایي چې دمینې دیوه ترخه غرېوه یې تاته کله هم
دخپلواوښکواوځپلي غرورډالۍ نه ده وړاندې کړې.
زه بیاهم دنړۍ دنېکمرغه انسانانوڅخه یم ځکه ته بیاله مانه ګیلې لرې اودهغې شپبې
انتظاردې دپسرلي دباران په څېر په زړه اوري چې چېرته مې په یوازېتوب کې پیدا کړي.
ګرانې !ستایاد زما دروح سره پیوند اخیستی کټ مټ لکه شورچې دسمندرپه څپوکې
نغښتی اویالکه وږمه چې دګل په غېږو اورنګینوپاڼو کې خوب کوي خویوڅوک شته چې
زمانه هره شپبه ستا دهېرولوتقاضالري.
هوریښتیا زه هغه ونې ته ورته یم چې له ځنګل نه وړاندې یوازې ولاړه وي ته دیوې مساپرې
مرغۍ په څېرراغلې اوزماپه څانګوکې دې ځاله وکړه په هغه څانګه کې چې تل دلودیزله
لوري را الوتونکوبادونوته مخامخ وه.
با د چې ځاله زماله څانګووغورځوي پدې کې دونې څه ګناه ده نوهیله کوم چې خپلې ګیلې
په خپل زړه ې خوندي وساتې کټ مټ لکه زما په زړه کې چې ستا لپاره ځینې ناویلې خبرې
لا تراوسه پاتې دي.
۱۹۱۲۱۳۸۷
ننګرهارپوهنتون

# د شاعر سلګی

ټوله کوټه زېړ رنګه پاڼو نیولې وه  او د شپې نرم باد په وړه کوټه کې د شمعې تته
رڼا وروورو خوځوله چې لمبه یې د نامراده پیغلې  دوربل په څېر یو خوا بل خوا رپېده
او سیوری یې د شاعر په تندي ټالونه خوړل هغه خپل ورستی  شعرلیکلی وو او په
رنځورو سترګو یې ورته کتل شاوخوا  د شعرونو پاڼې هم خورې وې چې
د شاعر د تېر عمر لیکلي شعرونه په کې په پیکه کرښو انځور شوي وو  باد به چې دوړې کوټې
کړکۍ  وخوځولې نو په کوټه کې به د شعرپاڼې د غولي ګرد چاپېره خورې شوې او په هوا کې
به پورته  شوې یوه نیمه خوبه د کړکۍ له ماتې ښېښې نه ووته او په تیاره کې به دلاندې
سمندر ځپوته  وغورځېده خو شاعر نور پوهېده چې شعرونه یې ورنه یاغي شوي دي نور په
هغه کې د دې توان نه  ووچې په خپلو شعرونو پسې وګرځي هغه لیدل چې له
سپینو پاڼو د شعرونو انځورونه روان وو  د شمعې رڼا هم د هغه خوا ته رڼا نه کوله یو ازې
پتنګان وو چې د نور وشپو په څېر یې له  شمع طوافونه نه کول او د شاعر سترګو ته یې کتل
چې دیوه وړاندې منزل لارې یې څارلې هغه  په رنځور حالت کې د یوه تلپاتې شعر په
لیکلو د خیال په صحرا کې مزل کاوه چې ناڅاپه  د باد څپه ودرېده تنګان څک شول په ټوله
کوټه کې خشوبویي خوره شوه یوه پرښته د باد له  څپې سره له کړکۍ راننوته په غولې
د شاعر څنګ ته په درنښت کښناسته رنګین وزرونه یې  وخنډل خوشبوزیاته شوه پرښتې
وزرونه ټک وهل د شاعر سترګې وغړېدلې د پرښتې په  وزورد شعرونو خورې پاڼې راغونډې
شوې یو سور ګلاب ورنه چوړ شو پرښتې د غه ګلاب رواخیست  پنګان یې په کې وا چول
بیا یې لومړی خپلې او بیا د شاعر پزې ته نږدې کړ شاعر سلګۍ  ووهلې  او پرښتې ته یې لاس
ورکړ پرښتې وموسل او شاعر ته یې وکتل
نور خیالونه مه کوه  ستاد ورستي شعر الهام زه یم راځه خپل ځان په یوه لوړ مقام کې ستا په
یوه تلپاتې  شعروا ړوم
دواړه دیوه لرې منزل په لورې والوتل شاعر او پرښتې په هوا کې د شمعې په  خوارا وکتل چې
په شاعر پسې یې همغسې اوښکې تویولې

# لومړۍ اوښکې

اوښکې دبې وسوانسانانودوجود وروستۍ سرمايه ده چې دفطرت دقانون له مخې دغه نړۍ ته دهغوى له خوا ديوې بې ارزښته ډالۍ په څېروړاندې کيږي
دانسانانوله سترګوچې کله دغه رنې چېنې راوخوټېږي نودزړه دردونه يې ترډېره ورسره سپکېږي ځکه چې دهغه په زړه کې دويراوغم توټې په سمندرکې دکنګل دټوټوپه څېرويلېږي اوله سترګويې داوښکوپه ځاځکوکې دغې نړۍ ته ځان ښکاروي ماهم دماشومتوب له ژړاګانووروسته دغه قيمتي مرغلرې دسترګو په کاسو کې دامانت په څېروساتلې اودهېچا په وړاندې مې هم دغه ډالۍ ونه کاروله حتى دډېرونږدې دوستانودمرګ په ورځ مې هم داوښکوبندونه ترلي وو.
کله چې ملاصيب دهغوى دقبرپه سرد نړۍ نه دهغوى دتلووروستۍ دعاګانې لوستلې زه چوپه خوله ولاړوم زړه مې له درده ډک وو خود سترګوکاسې مې له اوښکوتشې وې.
کلونه وروسته چې کله تارا باندې دلومړي ځل لپاره دخپلې مينې اومهربانۍ رنګين وزرونه وغوړول اوزه دې په دغه سپېڅلې اسماني ډالۍ ونازولم نوله ماسره دمننې لپاره هېڅ نه وو حتى په ژبه مې يولفظ هم نه وو چې ستانه مننه وړباندې وکړم
په نړۍ کې ډېرکم داسې کسان پيداکېږي چې داوښکوتويولوځاى وپېژني اوددغه قيمتي ځاځکوپه ارزښت وپوهېږي.
ماته په دغه نړۍ کې داسې څه په نظررانه غلل چې ستا دمينې اومهربانۍ بدل پرې اداکړى شم هغه يوازې زما په سترګوکې کنګل شوې اوښکې وې کله چې تاته مخامخ شوم نودسترګوترلي بندونه مې مات شول اودلومړي ځل لپاره مې ستا حضورته داوښکوډالۍ وړاندې کړه.
هغه اوښکې چې مادخپل وجود وروستۍ سرمايه ګڼله ستاپه قدمونومې وڅڅولې خوستادمهربانيوزوراويوه نه لېدونکي نامريه ځواک دې ته پرېنښودم چې هغه وياړلې اوله غربوه ډکه ببه له تاسره تېره کړم.

۱۳۸۷\۱۲\۱۸

جلال اباد ښار

# نامعلومه ويره

خوله يې وازه نيولې وه اوله ګرمي يې په ټول بدن خولې راماتې وې دونې يخې سيوري ته په رارسېدوسره سم يې په ځمکه ډډه واچوله څوسترې ساګانې يې ويستلې پاس دونوڅانګوته يې وکتل مرغانوشوراوزوږجوړکړی ووچې دلاروي په غوږونوښه نه لګېده خوستړياپکې ددې څواک هم نه ووپرېښی چې دغه شورماشورغلی کړي شېبه پس يې سترګې سره ورغلې اودخوب ناڅاپي څپې په غېږکې واخيست په خوب کې يې اوږدې اوږدې ساګانې ويستلې اوخراری يې جوړکړ ونې ته له نږدې کروندو دغرمې دګرمی تاوونه اوچتېدل اوپه هواکې يې يوډول ګردخورکړی وو د مازديګري سيوري مخ په کږېدو و چې دا وده لاروي په ډډو ا وبياپه ټول بدن يخه څپه واولګېده دبادونوله شغاسره دخو به راويښ شوځای په ځای راکښيناست اوږده ساه يې ويسته دمه يې جوړه اوخولې يې وچې وې په هنداره کې يې خپله دسراوتازه راغلې رېيرې وښتان سم کړل اوبيايې په ځمکه ايښې خولۍ ته لاس کړ چې ناڅاپه يې په خپله خولۍ کې دليک په پراته پاکټ سترګې ولګېدې په سترګويې باور رانه غی زرزر يې دليک ډډې ته وکتل په غټوکرښوورباندې ليکل

((دمرګ لخوادمرګ لايق ته ))

هغه ته چې له مرګ سره يې مينه له ژونده نه هم خوږه ده

زريې په رېږد ېدلوګوتوپاکټ پرانېست په مينځ کې يې په يوه سپينه پاڼه ليکل شوې سرې پاڼې ته وکتل

ګرانه !ددې کرښولوستل به تاپه دې وپوهوي چې يوه ورځ نه ښنه غواړم په دې نږدې موده کې به دخپل اجل دونې سيوري ته په يوه اوږده خوب دتل لپاره هم اوده شې

همدا شېبه چې ستاسرته ولاړيم نوپه شونډودې موسکاخور ه ده خو ډېرزربه دې په شونډودموسکادغه فصل ديوې مرګونې چوپيتاپه هديره بدل شي هرڅومره چې زرماته ځان وسپاري نومرګ به دې درنه خوښ وي يادلره چې هر ه ساه اوهر قدم دې اوس هم زه څارم

په درنښت

ستاښاغلی مرګ

ددغه نااشناليک نه دادي کلونه تېرشول دونې لاند ې داوده   ستومانه لاروي ټول ژوندپه وېره کې تېرشو وېرې اواندېښنويې اوس په رېږه کې  سپين ولګول خولاهم دمرګ دډالۍ دراتلوله وېرې ډک انتظار د خوب رنګينې کوترې دهغه له سترګوالوزولي دي

# رنګين عذاب

کله چې له تا سره دملاقات شپې را نږدې کېږي زړه مې له واکه وځي او بې واره داسې درزاکوي چې اوازيې خپله هم اورم داسې احساس کوم جې اوس راڅخه يوه ډېره سخته ازموينه اخيستل کېږي.
روح مې په يوه خوا ړه عذاب ککړوي او سترګې مې ديوه ناڅرګند لوري نه ديوې ناليدلې رڼادراتلو لارڅاري زه په دې کيفيت لاهم نه پوهېږم دخلکو چې کله دخپل محبوب دوعدې او ملاقات خبره غوږته ورسېږي نوخوښي کوي او ځانونه دنړۍ ترټولو ښاغلي او نېکمرغه انسانان ګڼي
خوزه تل دروحي عذاب په سمندرکې ډوب وم دخپلې تمنااو پټې هيلې داظهارلپاره الفاظ ګورم او ځان راته ديوه لاس تړلې بندي غوندې اومظلوم انسان غوندې ښکارې زمالپاره دادخوند او سرورپه ځاى ديوه سپېڅلې ازماينښت شېبې دي.
زه رېښتيا وايم چې په دې شېبوکې مې دژبې نه فصاحت او ټولې خوږې خبرې دالفاظو په جامه کې تښتي او ياهم مري يوازې دمنني اودرناوي هغه څوسپېڅلې الفاظ راسره پاتې وي چې هروخت يې درته وړاندې کوم.
که زمايوه غوښتنه درنه منظوره وي نوهيله کوم چې ماته له وړاندې وعده مه راکوه زماخواته په ناڅاپي ډول راځه چې له دغه رنګين عذابه بچ شم

# مساپر

ته دمابنام په تیاره کې ناوخته سترې ستومانه راورسېدې په ساه کې دې د سترپيانبې خور
ې وې او په ښکلي مخ دې دلو مړي ځل لپاره د سفرګردونه پراته وو چې ستاښکلا يې د پيکه
کېدو په ځای لارا برسېره کړې وه
خوزه پوهېږم چې په شونډو دغورېدلې موسکا د پرد ېسی او سترپيا له درده ډکه ده او سخت
ارام ته اړيتا لرې نوځکه خوما په زړه کې ستادديدن تنده وساتله او هغو شېبو ته انتظاروم
چې سترپيا دې ورکه شي او په ځېره ددې يو ځل بيا طبيعي ښکلاوزرونه وغوړوي
.ته ډېر زراوه شوې او دخوب پرښتو دې ويه خپلولاسو نو ښکلې سترګې درپټې کړې زه دکټ
ترخنګ ټوله شپه ويښه ناسته وم کټ مټ دهغه ماشوم په څېر چې خپل کورته راشي
نو پلاريې داوږدې مساپرۍ نه راغلی وي خودده دورتګ په مهال اوده وي زماله
سترګو خوب تښتې وو يوازې تاته مې کتل چې په ځېره دې يوډول نارينه رعب خوروو کله به
مې احساس کړه چې ته ماته ګورې او هرنظر مې خارې.زه ټوله شپه ويښ ناست وم او ددې
انتظارمې کاوه چې خوب دپوره شي اوله راويښېدو سره سم درته له ګيلواوخبروډک زړه
تش کړم او په غېږکې دې پناه واخلم.
دنيمې شپې نه هاخوا زه هم دخوب يوې څپې واخيستم په خوب کې مې ليدل چې سترپيا دې
لرې شوې وې او خبرې را سره کوې
دسهار دمرغانو په شورماشور راويښ شوم په ورخطاډول ستاکټ ته درغلم پښې مې
لړزېدلې خوکټ دې خالي وو په منډه لاړم ټولې کوټې مې وپلټلې په انګړکې هم څوک نه وو
دباندې ووتم دسهار دلمرخرک سره وړاندې په صحرا کې يو سيورې له کلي روان وو مخ ته
مې له قهره ځېره ورکړه په اننګو مې ديوې تاندې بوسې لوندوالی حس کړ، هلته وړاندې په
صحرا کې ته زماله سترګو پناه شوې اودلته بادزما په اننګو دغه لوندوالی وچ کړ

# برخليک

تاخوويل چې زمادتقديرپه رنګينه پاڼه تراوسه هم دهېرکليمه نه ده ليکل شوې اونه مې هم دزړه په قاموس کې دغه له دريوتوروجوړه کليمه کومه مانالرې.
تاخوبه هرماښام ويل چې ستادهېرېدوشېبه به زماپه ژوند کې دوروستۍ ساه نوم وي اوهغه ځاى چې ستادهېرېدوپرېکړه په کې کوم زمادژوندوروستۍ تم ځاى.
نوبياولې زمادنوم له اورېدووېره لرې اوژبه دې ددغه څوتوروپه ويلونه توانېږي زه ستانه داپوښتنه نه کوم چې زه دولې هېرکړم ؟
داګيله هم نه درنه کوم چې له ياده دې ويستلم خولږترلږه راته ووايه چې دتقديرترپاڼودې ګوتې څنګه ورسېدې ؟
چې دغه بې خونده برخليک دې راډالۍ کړ.
هغه برخليک چې مايې همغه مهال له پېښېدووېره لرله
اياستالومړۍ خبره دورغ وه ؟که چادرته دتقديرپه پاڼوکې دلاس وهلولاروښوده ؟
زه اوس دمرګ ترورځې په همدې انتظاريم چې ددې څوپوښتنوځواب راکړې.
ستادزړه په قاموس کې دهېرکليمه چاورزياته کړه ؟
مانايې چادرته وښاکله ؟
اوترکومه به ستادزړه دقاموس په طلايي پاڼوليکل شوې وي ؟

# بې وزرونو مرغان

کله چې په دې ښارکې دژوندله روزګاره ستړي انسانان دشپې وختي په خپلو نرمو بسترنو دخوشبو په څپوکې په خواږه خوب اودېږي اوتېوله شپه دورځې په څېر په خوب کې هم سرګردانه ګرځي نو څنګه به ددې ناارامه شپې په زلفوکې د هغو سوو څرېکو او مړوو سلګیو اواز واوري چې په سمندرکې دباران د څاڅکې په شان دتودیدو په مهال یوډول اوازکوي اوپه باراني سندره بدلېږي ؟

دلته څوک دهغواوسېلوله تاوه خبردي چې له سوریوسینو دبې کوره مرغانو غوند ي په یوه ناپایه صحراکې هواته جګېږي اوبیادسهارله لمراختووړاندې دهرکورپه انګړکې دپرخې سره یوځای راښکته کېږي.

تراوسه چادا پوښتنه کړې چې دپرخې څاڅکې ولې خپل ځان زموږ داوښکوپه شان جوړوي ؟اوبیاداغزوله سلګونو تېرووڅوکوورو سته ځان ترګلپاڼورسوي

په دې ښارکې په سګونو داسې کسان شته چې شپه ورته ددرد، ژړااوسلګو نوم دی اوخوب نه پېژني دوی دشپې په دې ترخواونه تېرېدونکوشپوکې ددې انتظارنه کو ي چې شپه به سباشي اودیوې نوې ورځې لمرڅرک به دوی ته په خپلوطلایي وړانګوکې کوم نوی پیغام راوړي ، بلکې ددې انتظارباسي چې هسې نه دښارخلک یې په مخ داوښکولارې او دسرو سترګو انځور وګوري ، اوبیاورته دژوندانځورددوی په څېرتت شي.

نواې ښاغلو!

کله چې مانښام اودېږی نودخپلوکورو نودروازوته دومره زرکلپونه مه اچوی خیردی دومره وختي خپل ځانونه ترخپلونازدانه اوزرینو بسترونومه رسوی دخپلوکوټو سرې او شنې پردې یوڅه وخت مه کشکوی ، ممکن کوم بېنوا ستاسې دروازه ټک ټک کړي اویاهم بهرپه پلې لاره کوم مزدورناوخته په تیاره کې په لاره روان وي هسې نه چې لمن یاڅادریې ستاسې ددروازې دمېخي سیمونوپه تاراویا دګلونوپه پاڼوکې بنده شي.

داسمه ده چې دوی بې وزرونو مرغانوته ورته دي.اواوس دالوت لپاره وزرونه نه لري خو ددې وړاندې بایدددې پوښتنه وشي چې دهغوی وزرونه څه شوي دي ؟چامات کړي؟

هغوی خودغه بې سره نړۍ ته داسې یوازې اوبې وزرونو نه وو راغلي؟

هغوی خپل وزرونه وشکول او تاسې ته یې ځپرې ترې جوړې کړې په دې چې ګرمي مو ونه
شي اوپروازونه مولالوړشي .داچې تاسې دومره لوړالوت کو ی ټول ددوی دماتو
اوشلووزرونو برکت دی
زه په دې ډاربږم چې هسې نه یوه ورځ ستاسې درنګینووزرونو ښکې زړې شي اوددوی
وزرونه له سره نوې ښکې راوړي بیابه تاسې څنګه ددوی دالوت مخه رانیسئ؟
۲۵\۸\۱۳۸۸جلال ابادښار
شپه دولس بجې

# درازونویږدي

داخویوازې ته نه یې چې ځان دې له مانه درازونوپه پردوکې دومره نغښتی چې دوجود خوشبویي دې هم زما په خوا دراتلولا رنه لري

ستا په شان په لسګونو ښېرې ماته هره شپه درازونوپه پردوکې راځي اوبیامې دژوند تېروشپېوازموینه اخلي اوهره ساه مې ازمویي خوزه پوهېږم چې داټول ستالاس دی چې ماته یې په رنګارنګ لستونوکې رااوږدوې اوبیامې دیوه بې باوره ښوونکي په څېرله کوم لرې ځایه څارې چې هسې نه له کوم بل مخه څه راپېښ کړم اودخپل زړه په سپینه پاڼه یې ولیکم.

زه ستا په دې عمل نه خپه کېږم خوپه زړه کې لړترلږه داګیله خامخاراګرځي چې تراوسه ولې ستادااعتماد ورونه ګرځېدم اوخپله ټوله هغه مینه دې رانه کړه چې په ازل کې دې زما په نوم یوه انسان ته دخپلې لومړۍ ډالۍ په نوم ټاکلې وه . اومایې هم دخپل ژوندپه اوږدوکې دزهروپه څېرتریخ انتظارورته وکړ

زمامحبوبه!

زماخوټول عمرپه دې انتظارکې تېرشو چې څه وخت به ستاددغه وعدې وروستۍ شېبې پوره کېږي اوزه به څه وخت ستادمینې وړګرځم

ماکه هره شېبه په خیال کې دیوې نوې مجسمې په توږلوتېره کړه خوتاهم ورته پوره انتظاروکړچې زه به خپل هغه هنرچې تاراکړی په دغه مجسمه کې څنګه وکاروم

نوکه ته هم ماخپل محبوب بولې زمادازمايښت موده پای ته ورسوه اوله خپل باوره مې محروموه زه وعده کوم چې دزړه په کرونده کې به مې ستادمینې زرغون شوی تخم پاڼې وغوړوي اووږې یې خورې شي

1388.7.25

# دالهام پرښته

سهارلا د لمر وړانګوزمادژونددیوې نوې ورځې تندې نه وو ښکل کړی چې ستا قاصد راته مخامخ ودرېده په دماغ مې ستا دوجودخماري خوشبو خوره شوه اوقاصدمې دنړۍ په هغو نېکمرغه انسانانوکې حساب کړچې په ژوندون کې یوځل ستادلیدل ویاړورپه برخه شوی خودقاصددخولې خبره دزهرجن خنجرپه څېرراباندې ولګېده هغه ماته کومه بده خبره نه ده کړې اونه هم ورنه خفه یم خولږترلږه یې بایدزمادمات زړه خیال ساتلی وی هغه داخبره راته وکړه چې ته نورزماله شعرونو مخ اړوې اودالهام هغه پرښته چې داسماني ډالۍ په څېردې ماته رااستولې وه بېرته ستنوې

قاصددلمرله راختووړاندې روان شو هغه هم په داسې حال کې چې دلمرزرینې وړانګې زماپه لورراتللې خوقاصدراڅخه د یوه تورسیوري په څېرروان وو، هغه په دې ښه پوهېده چې ماتې ځانګې دبادله کمزوروڅپوسره هم له ونوراوغورځي اوبیایې سیلۍ له ځان سره وړي

مابه هم داسیلۍ یوسي خودمنې درېږېدلو پاڼوپه څېربه مې بیاهم هره شېبه مخه ستاپه لوروي ترهغې چې ستاقاصدستادوجودله وږمو سره یوځای راشي اومابېرته همغه بې وړانګوسهارته ستون کړي بیابه مې هم ستانه دلیدلودهیلې په ځآی غوښتنه داوي چې همغه دالهام پرښته یوځل بیازماملګرې کړې

۲۰۰۹\۱۱\۱۲دصفاراډیودفتر

# يوه پوښتنه په سلګوکې

دننګرهار ملګري ته لیک

زماګران ملګریه ! ماواوتا دژوند دزهروپه ښېرترخې شېبې ورځې چې کله هم دتېرېدلونه وې دمینې اوصمیمت دخوږوپه زوردوخت له ستوني تېرې کړې دواړه دیوه اوبل زړه ته کښنته شوو اویودبل دزړونوپه کروندوکې موقدمونه ووهل.

خوددې سره سره زه لاهم تاته دیوه رازغوندې ښکارم یوداسې رازچې لاهم پرې دپوهېدلوهڅه کوې خوزماهیله داده چې دېررازونه همداسې ناسپړلي ښه وي.

پرېږده چې زما په زړه کې خپل عظمت وساتې اودخزان دهغوپاڼوپه څېرچې دمني سیلۍ یې هرې خواته څغلوي دخلکوترژبوونه رسېږي.

ګران ملګریه !تابه دېرلوړلوړغرونه لیدلي وي اویابه پرې ختلی اوکوزشوی وې خوکله به دې هم په دې فکرنه وي کړې چې ددغه غرونوپه منځ کې څه شته اوکنه؟

ښایې ستاسترګوته به لاهم په دغه غرونوکې دپټولالونوځلانه وي رسېدلي.

زه هره شپه دغرونوپه زړه کې دپټولالونواوغمیوځلاحس کوم خوددغه ځلازړې دبل چاپه سترګوکې نشم شیندلی.

زمازړه یو وخت له دېرودردونوډک ووهمدغه دردونه بیاپه غرونوکې دپټولالونوپه بڼه واوښتل خوترننه مې له ښامارانوخوندي وساتل.

ګران ملګریه!

زه په دغه ښارکې یوپردېس یم خودغه ښاربیاهم ماته پردی نه ښکاري کله چې یوڅوک نااشناجزیرې اوکومې نالیدلي صحراته لاړشي نودرازویل خوڅه کوې چې دخپل سیوري هم وبرېږي خوزه بیاله خپل سیوري نه وبرېږم ځکه مالاتراوسه خپل سیوری هم نه دی لیدلی

.

یوازې یوڅوک دی چې ددغه ښارله شورماشورسره یې دهواپه څېرتړلی یم اوهره شېبه دخپل ارمان په څېرراته ګرانېږي دهمدغه ارمان لبونۍ تلوسه اوس هم زما دزړه په تاتوبي واکمنه ده.

هغه مې هره شېبه يوې داسې نړۍ ته وربولي چې شپې اوورځې پکې دخوبونوپه څېرتېرېږي اودخوشبوغوندې خمارپکې خوردی زه نه پوهېږم چې دژوند په دغه اغزنه لاره تګ ته دوام ورکړم اوکه نه ؟

غواړم همدغه رنګينې نړۍ ته ديوه سيلاني په څېرورشم خوفطرت مې هرځل راته وايې چې ددغه اغزوله درده يوه څړيکه دژوند دزروکړسنده خنداګانوڅخه وياړلري زه پوهېږم چې زما خپل محبوب ته درسېدو لنډه لاّر همدغه ده خودغه لاّربآيد د مزل له پيل وړاندې په خپلو اوښکو او پاشي کړم.

۱۳۸۸\۱\۳

# درازونو جونګړه

ماکله هم داګومان نه کاوه چې زما ترخه شعرونه اوسندرې به دومره زرديوه داسې ښارداوسېدنکو زړو نوته لاروکړي څوک چې دژوند هره شېبه په کړسنده خنداګانو او دموسيقۍ په خمارکې تيروي
اوس هره شېبه زما جونګړې ته چې دښار په يوه څنډه کې ده ډېرداسې کسان راځي چې زما په شعرونويې زړه بايللی دهغوی په رنګونوکې ديوه ژوردرد ترخې نښې زه له ورايه ګورم هغوی ماپه خپلو خواخوږواودوستانوکې حسابوي هورښتيابايد ووايم چې دوی ټول هغه کسان دي چې زړونه يې بايللي اوپه راتلويې زما دجونګړې فضا د درنې چوپتيا په ځای غلي فريادونه اوساړه اوسيلي نيسي څنې وايي چې په خپلوشعرونوکې يې راولم اوداسيې شعرونه ورته واوروم چې هغوی خپل ځان پکې وګوري.......
ځيني بيا په مينه کې دخپلوماتو کېسې راته کوي ځکه هغوی پوهېږي چې زه هرڅه ليکم اوبيايې دښارخلکوته رسوم دوی له مانه غوښتنه کوي چې دارازونه به چاته نه وايم.
نوځکه خوزما زړه اوس درازونوپه هديره اوښتی ما هوډ کړی چې دغه رازونه به ترهغه زما په زړه کې وي ترڅو چې پکې ساه چلېږي.
هديري ته چې يوځل مړي ورسپېږي بيا دهغه ځاې شي . رازهم هماسې زما زړه ته ننوځي اويو وخت به همداسې خپل مخاطب ته ورسپېږي لکه دقيامت په ورځ چې مړي دخپل خالق په حضورکه دربېږي.
زما اوهغوی ترمينځ دميني اودرد يوه داسي فضا غوړېدلي وي چې ډيرځله دهغوی دسلګيو سوڼ سوڼ اوغلی فرياد دلرغونوپېړيودموسيقۍ تال ته ورته شي نوځکه خوزه دجونګړې وراوکړکۍ وتړم چې څوک دغه درددونکې اوازونه وانه وري اودلاروپانومزاحمت ونه کړي.
۱۳۸۷\۱۲\۱۸ ننګرهارپوهنتون

# ستا ډالۍ

ستاهغه ګل چې ماته دې راکړاوس مړاوی د ی او وږمې یې هم دمرګ په خوب اودې دي خوستا یادونه اودمات شوي غرور نغمې چې زماپه غوږونوکې دژوندشېره څڅوي لاهم ژوندی دي اودګلاب په وچوپاڼو دیوه رنځوارمان انځورکاږي

هغه ګلاب چې تاماته راکړمړاوی شو،خوهغه شېبه چې دګلاب راکولوپه مهال تازماپه زړه کې وشیندله هېڅکله هم نه مړاوې کېږي ، تل به په غرني لښتي کې دروانواوبو په شېرسندریزشورکوي اوماته به دکلي په سمسورواوجنتي باغچوکې دګلاب غوړېدلودموسم شېې ورځې رایادوي ، په ځانګړې ډول دهغه ویاړلې ورځ سهارچې همدغه ګلاب په کې دځلانده لمرپاڼوته خپلې پاڼې پرانستلې اودلومړي ځل لپاره یې په کلي کې خوشبویي خوره شوه خوداچاته معلومه وه چې دغه ګل به ستاپه نازکوګوتودګلابوله سرۍ جداکېږي اوبیابه یې ته دخپل ژونددلومړۍ ډالۍ په نوم یوداسي چاته وړاندي کوي چې پخوایې له چانه دا

سې ډالۍ نه ده اخیستې ،هغه ګلاب دلته مړاوی شو خوهلته یې زمادزړه په بڼ کې رېښې وغزولې اوهغه نړ ی به ډېرزرپه وږموکې ولمبوي ته دافکرونه کړې چې ستادغه ډالۍ ماورکه کړې دغه ګلاب به تل هلته تروتازه وي اوهغه وخت به رېژېږي چې زما په زړه دمرګ توپان راشي

۲۹-۷-۱۳۸۸

ننګرهارپوهنتو ن

کتابتون

# موراومرګ

زه چې ستا په یاد هرڅه ولیکم نوخلک یې په مینه لولي زمادخیال تناب نیسي اونیغ مې دزړه ژوروته کښته کېږي هلته ستاد یادونو روان سیند ته په حیرانۍ سره ګوري فقط لکه یواجل نیولی اوستړی لاروی چې دشنه ځنګل په منځ کې په نرۍ لارله اوږده منزل وروسته دیوه ښکلي سیند غاړې ته ورسېږي اوهلته په څپوکې خپل مات رامات تصویروګوري

هغوی زماهغه سرودونواوسندروته ګوته په غاښ دي په کومو مې چې ستادمهربانۍ یوه برخه ستایلې وي خودلږڅه خیال وروسته یې په تندي دخفګان کرښې خورې شي اویوبل ته وایي لکه چې دمورله سیوري محروم شوي!

خوهغوی نه پوهېږي چې زه حتی ددې خبرې اورېدوته هم چمتونه یم نوهغې چې سترګې مې ددغي نړۍ له رنګینونه وي پټې کړې نوغوږونه به مې ددغه خبرله اورېدو کرکه کوي.

زمادشعرونواوسندروټول الفاظ دکوم بې ښښتنه ځنګل دیاغي اوګډوډوځانګوپه څېرده خویوازې ستایادونه دي چې زما شعرونو اوسندورته دبیابیاویلواواوریدلومقام ورکوي که همداشیبه ستا یادونه ترې وباسم یوازې ځوتوري اوبې خونده لفظونه به راپاتې شي

زه بیاهم له دوی نه هیله کوم چې زمانه دغه ځورونکې اووژونکې پوښتنه ونه کړي
.

زه دې ټولوښاغلوته په پوره باورویلی شم چې ستا په نشتوالي که به زماشعرونه اوسندرې دویلوڅه چې له ډېره درده به دهغوی دغوږونوپردې وشلوي ستا له تللوسره به یوځای زماله ژبې اوزړه دغه ټول الفاظ دخیال له اقلیمه ګډه وکړي

اوځای به يې ديوې ارماني اونيمه خوامينې په ځای دزهروپه ځېرترخه دردونه ونيسي چې بيابه دخلکوپه زړونوکې دمينې اومهربانۍ دباران په ځای دهغوی له پرهرونوويني بهوي داهغه ورځ ده چې زه يې په خيال کې له راوستلوهم وېره لرم

**ننګرهارپوهنتون**

# تلپاتې مینه

په دغه نړۍ کې د ټولو انسانانو مینه د پرخې هغو رڼو څاڅکو ته ورته ده چې د سهار د لمر څرک سره یو ځای د ګلپاڼو له غېږو د تل لپاره د ابدیت په لور الوزي رېښتینې مینه بیا د پرخې د غه څاڅکو ته نه بلکې د ګلپاڼو په منځ کې هغه پټې ورمې ته ورته ده چې د باد ونو او لمر سره سره ګلونه یوازې نه پرېږدي خو د ګل د رژېدو سره یو ځای د یادونو په هدیره کې خاورې شي او ورمه یې څوک نشي وژلی.

# ویره اوینا

اوس چې د پسرلي په موسم کې له باران نه وروسته دلمدوځمکو تازه ګیاوو ، ویلنواو د ونود تازو ځانګو ښکلی بوی خور شي اویا هم دکلي په کروندو کې دلمده بل اوجبه زارو سیلۍ وچلېږي نوماته ورسره یو ځای ستاد خوږو خبرو اوکړسنده خنداګانو زرینې شېبې رایادې شي په همدې وخت کې یوه نامعلومه ښکلي ویره زمادخیال په ګلپاڼو دشاتودمچې په څېروګرځي.

هغه شېبه څومره په زړه پورې اونه هیریدونکې ده چې د پسرلي په لومړیو شپوورځو کې به دواړه دکلي په خوړکې دلاله په ګلانو پسې ګرځېدو اوددغه ګلونو په نازکو پاڼو به مولاسونه سره کول اودنکریزوتنده به مو پرې ماته کړه خوکله چې به په اسمان کې تالنده اوبریښناشوه یابه د شرکنده باران ځاځکوډېرې لمدې کړې نوپه وېره به زماخواته راغلې اوله ګوتوبه دې رنګارنګ ګلونه په ځمکه ولوېدل.

له ډیرې ویرې به دلاسونه زماپه غاړه کې راواچول دواړه به ترهغهد یوې ونې لاندې غاړه غړۍ ولاړوو ترڅو به چې باران نه وو دربدلی.

کله به چې باران ودرېده نوبیرته به دخوړ په غاړه له کلي مخ په وړاندې روان شوو.

ستاهغه ویره اوس هم ماته یاده ده زه پوهېږم چې زمونږژوند همدغسې یوې ویرې ښکلی کړی زه له تالندې اوبریښنا، نه ویریدم خوله پخوانوخلکوبه مې چې په خوړکې دراغلوسیلابونو کیسې په خیال کې وګرځېدې ویرې به واخیستم خوزما دغه ویره ستا له سترګوپټېه وه ته له سیلابه ناخبره وې تا لادسیلاب کیسې نه وې اوریدلې ته له تالندې اوبریښنا وېرېدې زمازړه په داسې وختونوکې دسیلابونو ویرې خوړلي وو.

تاله ویرې زماپه غېږکې پناه اخیسته خوزما لپاره داسې پناه ګاه نه وه چې له سیلابه مې وژغورې.

اوس کلونه تېرشوي ته همداسې ویرو له ما واخیستې ډېرګلونه دې له نازکوګوتوپه خاورو ولوېدل.اوس زما وېرې هم لوېې شوېدې خو کله چې راباندې راشي نود یوه داسې ځواک غیږې ته پناه وړم چې هلته ویره څه مانا نه لري اوما دیوښکلي معشوق په څېرنازوي

.

همدغه ځواک دی چې دژمي په سړو سیلیوکې هم پناه وروړم نوپه زهن کې مې دهماغه وختونوخوشبويي خوره شي دسیندغاړو ، لمده بل دونودتاندو ،ځانګوبوی اوستادلمدو ويښتانوورېمه مې دماغ نشه کړي اوس مې ځکه زړه غواړي چې یوه ورځ دتل لپاره دهمدغه ځواک په غېږ کې پناه واخلم او ځان له دا ډول ویرو خوندي کړم.

۱۳۸۷\۱۲\۲۲

# دشاعرسلګی

ټوله کوټه زېړرنګه پاڼونیولې وه اودشپې نرم باد په وړه کوټه کې دشمعې تته رڼا ورو ورو خوځوله چې لمبه یې دنامراده پیغلې د وربل په څېر یو خوا بل خوا رپېده اوسیوری یې دشاعرپه تندي ټالونه خوړل هغه خپل ورستی شعرلیکلی وو او په رنځورو سترګو یې ورته کتل شاوخوا دشعرونو پاڼې هم خورې وې چې دشاعردتېرعمرلیکلي شعرونه په کې په پیکه کرښو انځور شوي وو بادبه چې دوړې کوټې کړکې وخوځولې نوپه کوټه کې به دشعرپاڼې دغولي ګردچاپېره خورې شوې اوپه هواکې به پورته شوې یوه نیمه خوبه دکړکۍ له ماتې ښیښې نه ووته اوپه تیاره کې به دلاندې سمندرڅپوته وغورځېده خوشاعرنورپوهېده چې شعرونه یې ورنه یاغي شوي دي نورپه هغه کې ددې توان نه وو چې په خپلوشعرونو پسې وګرځي هغه لیدل چې له سپینوپاڼو یې دشعرونوانځورونه روان دي دشمعې رڼاهم دهغه خواته رڼ انه کوله یوازې پتنګان وو چې دنورو شپو په څېریې له شمعوطوافونه نه کول اودشاعرسترګوته یې کتل چې دیوه وړاندې منزل لارې یې څارلې هغه په رنځورحالت کې دیوه تلپاتې شعرپه لیکلودخیال په صحراکې مزل کاوه چې ناڅاپه دبادڅپه ودربده پتنګان څک شول په ټوله کوټه کې خشوبویې خوره شوه یوه پرښته دبادله څپې سره له کړکۍ راننوته په غولې دشاعرڅنګ ته په درنښت کښناسته رنګین وزرونه یې وخنډل خوشبو زیاته شوه پرښتې وزرونه ټک وهل دشاعرسترګې وغړېدلې دپرښتې په وزرو دشعرنو خورې پاڼې راغونډې شوې یوسورګلاب ورنه جوړ شو پرښتې دغه ګلاب رواخیست پنګان یې په کې واچول بیایې لومړی خپلې اوبیادشاعرپزې ته نږدې کړشاعرسلګۍ ووهلې اوپرښتې ته یې لاس ورکړپرښتې وموسل اوشاعرته یې وکتل نورخیالونه مه کوه ستادورستي شعرالهام زه یم راځه خپل ځان په یوه لوړمقام کې ستاپه یوه تلپاتې شعرواړوم

دواړه دیوه لرې منزل په لورې والوتل شاعراوپرښتې په هواکې   دشمعې په خواراوکتل چې په شاعرپسې یې همغسې اوښکې تویولې

# وروستۍ ډالۍ

دغه له درده ډکې شېبې چې اوس پکې زه اوته بې داوښکوتويولو هيڅ نه لرو او په سوو اوسږو اوښکويې لمانځوماته ډېرې پخوا يادې وې او تاته مې هم څوځلې يادې کړې وې .خوته هغه مهال دنوې مينې په خوږوکې داسې ورکه وې چې زهن ته دې يوه شېبه هم پدې اړه دسوچ اوفکرموقع ورنکړه. مادرته هماغه مهال چې ټوله نړۍ دېوې نوې مينې دوصال په رنګينوټالونوکې ځنګېده وويل چې يوه ورځ به خامخا هم دبيلتون څپېړې ددواړومخونوته راورسېږي اودارنګينې شېبې به دلاله دپاڼوپه څېردسيلۍ له کمزورې څپې سره ورژېږي.

خوبياهم ستا دزړه په قاموس کې دبيلتون کلمه بې مانا وه اودغه شېبې چې د يوه اوبل نه مو په سترګو دمينې اومننې پردې ولاړې دي تا نه وه حس کړې اوس مجبوريو چې يواوبل دتل لپاره هېرکړواويوازې په زړونوکې دژوند دهغوشپو ورځويادونه وساتوچې دواړو پکې څوشېبې دمينې دصحراپه لورقدم وهلی وو.

زه تانه ملامتوم هغه اوښکې چې ته يې اوس له ډېره درده دخدای پامانۍ په شېبوکې تويوې ستاد پښېمانۍ اوښکې نه دي بلکې دمننې هغه سپېڅلې نظرانه ده چې په خپل زړه کې دغلې مينې دوروستۍ ډالۍ په توګه يې ته ماته راکوې.

يو سيلاب وړی چې دسمندرله ياغي څپوسترۍ ستومانه شي اونيم ژونداى دساحل په شګوپرېوزي نودمرګ له دغه ترخې تجربې وروسته يوځل بيادژوند ټولورنګينوته غاړه ورکوي، مينه ورسره کوي اوغواړي چې دمرګې يادونه دتل لپاره له زهنه وباسي.

ماهم دهمدغه سيلاب وړي په څېرستا دزړه ډالۍ دمينې دساحل په غاړه ترلاسه کړه خوداسې مهال چې له پخوامې دغه ساحل ته ديوه نوي مېلمه دراتلولارې څارلې سهاراوماښام به مې سترګې دسمندرياغي څپوته نيولې وې.

اوس بايد دفطرت پرېکړې ته هم په همداسې بې سارې مينه اودرناوي غاړه کېږدو دژړااوسلګوپه ځای دهغه چاپه وړاندې دتعظيم سرونه ټيټ کړوچاچې زمااوستا په ساه اوزړونوکې دمينې اوانسانيت نه پناه کېدونکې زرينې وړانګې وشيندلې اوهغه مقام ته يې وړورسولوچې نن دواړه ځانونه يودبل له مينې اودرناوي پوروړي ګڼو.

ماچې د مينې او درناوي څه الفاظ لرل ستاسو حضورته مې وړاندې کړل نورغواړم چې دخپل زهن په کروندوکې دهمدغه سترذات لپاره دمننې دالفاظوزړي وشيندم او بيايې دهغه مبارک په حضورکې دګلونوپه بڼه مننې دډالۍ په نوم وړاندې کړم.

جلال اباد ښار

# بندي وږمې

په کلي کې مې دژمي وروستۍ شپې ورځې په ډېربې خونده اوترخه انتظارکې تيرولې زه په ډېره بې صبرۍ دهغوشېبوپه انتظاروم چې دغرونوله لمنود واوروڅادر ټول شي اوپه لمدوخاوروکې بندي وږمې دغاټولواودنوروغرنيووابښوپه څېره کې ځان راڅرګند کړي مابه هرمابښام اوسهاردکوټې له کړکۍ نه هغه پراخه دښتواوغرونو ته کتل چې کله به دپسرلي نښې په کې خپل رنګونه وشيندي زمادعمرډېرکلونه دهمدې کلي په کوڅو اودوړاندي غرونو اودښتوپه لمنوکې تېرشوي ماته په ماشوم توب کې ديوې وړې رمې څرول راپه غاړه وو اوهروخت به مې د شوخوسرلکوسره مستې کولې هغه لارې پل په پل رامعلومې وې چې ماپه کې منډې وهلې وباويابه مې درمې دڅرولوپه مهال د شپلۍ وهلوتمرين کاوه .

دخپل ماشوم توب د شپيلۍ دهغې وخت نغمه اوس هم کله کله زما په غوږکې ازنګې کوي خوپه مانا يې نه پوهېږم.

نوريوازې هغه شېبوته انتظاريم چې يوه ورځ دپسرلي لومړۍ شپې ورځې ماته پخپله هنداره کې دهغې زمانويوتت انځورراوښايي اوپه دغه ځمکوکې چې اوس له واورولاندې دي دخپلوييلو پښوپخواني خاپونه وګورم زه که څه هم دژوند له همغه رنګينوشېبو ډېروړاندې راغلی يم خوډېرڅه اوس هم دواورو دانبارونولاندې دګلونوپه څېرزماله سترګوپټ دي اوديوښکلي رازغوندې ښکارېږي.

زه له پيله په دغه لاره پټې سترګې راغلی يم هرڅه ته مې ډېرسرسري کتلي خپل احساس مې په مرګوني خوب اوده کړی وو اودځمکې له زړه نه مې دګلونو راوتلو په رازځان نه وو پوهولی .دچانه مې دايوه پوښتنه هم ونه کړه چې دګل پاڼوته وږمې له کومه راځي اوداکوم ځواک دی چې دګل په پاڼوکې رنګونه شيندي اوبيايې دښکلومعشوقوپه ښه زمونږسترګوته دروي .اوس اوس راته ارمان راځي چې کاشکې همدغه ځواک ماته له سره دژوند کولواجازه راکړي اوپه منډه منډه دهمدغه

غرونودلمنوڅخه ښېل ژوند پیل کړم اوله رازنوداسې پردې پورته کړم لکه دسهارنسیم چې دګلغوټیوخولې پرانیزي اودلمرڅرک سره یوځای ورمې شیندي.

زماهیله داده چې نوی ژوند مې ترپخواډېرفرق ولري اویورازهم ناسپړلی پرښږدم پرېږده چې دژوند له کاروان یوڅه وځنډېږم خوپه پوښلورازونوپوه شم ،په ګلونوکې درنګ خورېدلو اوپه هغوکې دشاتودشیرې دپیداکېدلوفلسفه وپېژنم.

زمادزړه ګرانه واکمنه !

که هغه شېبوته بیادستنیېدلواجازه نه راکوې نوپه خیال اوفکرکې مې داسې ځواک پیداکړه چې په دغه ورشوګانواوواړه کلي کې خپله دنده زرترسرته ورسوم اوستاحضورته یولوړسترګي وفادارغلام په ځېرحاضرشم ورستی هیله مې داده چې زما تندی هم یوه داسې غرنۍ وږمه کړه چې ستادښایست په ګلونوکې په یوه اوږده سجده پرېوزي اودتل لپاره ورک شي.

ننګرهارپوهنتون

# نه هېرېدونکې شېبې

دمينې داظهارلومړۍ شېبې دهرمين په زړه دکانې دکرښې په څېرپاتې وي اوددغه سپېڅلوشېبوخماراوسرورکله هم په اسانۍ دچاله ذهنه نه وځي ماچې کلاستا په وړاندې دلومړي ځل لپاره دمينې داظهارجرئت وکړنوهغه شېيبه زه په دغه نړۍ کې نه وم داسې راته ښکارېده لکه په هواچې روان وم اوقدمونه مې په ځمکه نه ننبلي داهغه شېبې دي چې دډېروزړوروانسانانوزړونه پې بې واکه درزېږي زماپه ژبه دسکوت مهرلګېدلی وو هغه رنګين الفاظ اوخبرې چې ما ددغه رنګينې شېبې لپاره په خيال کې راغونډې کړې وې په ژبه مې وچې شوې، لکه څنګه چې په تندې وهلې دښته کې دللمې فصل دباران دوربدو په تمه وچېږي همداسې زما خبرې ستاد رعب اوعظمت وړانګود سترګوپه رپ کې وسېزلې.

داشېبې له سوز، ښکلااودومره رعب ډکې وي چې دنړۍ پادشاهانوبه په خپله پادشاهۍ کې هم نه وي ليدلي.

دادرد لکه مينه اوبيلتون په دې نړۍ کې له انسان سره يوځاي پيدا شوی.

په يوپيغمبرباندې دکوم الهي الهام اووحې نازلېدل له دغه شېبې نه ذره هم توپيرنه لري.

ماددغه شېبې تېرلووروسته ډېرڅه وپېژندل اوپه ډېروپټوخبرو وپوهېدم ماانسانان ده همدغه شېبې وروسته وپېژندل اودنړۍ دښکلاپېژندلولپاره مې هم په همدغه ورځ له سترګو پردې لرې شوې.

اوس زه له تانه هم دهمدغه شېبوسره زياته مينه لرم ځکه داهغه شېبې دي چې کله هم دهېرېدونه دي اوزه يې هغه مهال ستا حضورته ورسولم چې ترمنځ مو دغرېواوتکلف ولاړې هنداري ماتې شوې.

۱۳۸۷\۱۲\۲۹

# له دردونوډك خوبونه

زه دخپلوخوبونودتعبيرلپاره ډېرولرو سمندرونو ته لاړم چې هلته په يوازېتوب کې دناليدلو سمندرونو له مستانه څپو سره خپل خوبونه شريک کړم او د الهام په سمندريزو چپنو کې خپله مرګوني تنده ماته کړم خوله بده مرغه چې زه هم هغه شان ګونګ اوبې ژبې ولاړوم لکه څرنګه چې ستا په حضورکې ستادليدوپه مهال ودرېږم اوساه مې بنده بنده کېږي ځوځوځله مې نيت وکړچې دخوبونوپه ځای خپله ديوخوب غوندې دغه وژونکوڅپوته ځان ګذارکړم خوهرځل يوه غيبي لاس له شا راونيولم او يو ناشن اغږ به راته مخامخ شو.......

نه دايي لاره نده !

ستاخوبونه د يو لوړکمره په ډډ دګلونو غرنۍ سرۍ ته ورته دي چې له رنګونو او وږمو ډک دي خوله خوشبويۍ يې ېوازې غرنۍ هوا ا وسيلۍ خوند اخلي خوکه کومه ځانګه يې ددغه کلي دشپونکې لاس ته ورشي نو سبا به ټول کليوال دهمدغه سرۍ په لور را روان وي دغه غيبي اواز زما زړه ته ښکته شو خوزما خوبونه رښتيا هم تر اوسه يوازې زما لپاره ښکلي وو اوکه چاته يې بيان کړی شم نوبيابه هرسهارزمادجونګړې په مخکې ولاړوي اوزمادنووخوبونوپوښتنه به کوي ښايي زما دفطرت فيصله به همداسې شوې وي چې کله هم ستا په وړاندې دزړه درازونوپه ويلوو نه توانېږم اوديوسپېڅلي امانت په څېر يې ګورته راسره يوسم

... زه نه غواړم خپل ټول خوبونه بې تعبيره پرېږدم داسې لکه دلرغونو زمانومجسمې چې تراوسه هم ترځمکولاندې دي اوچاته يې دراويستولولارې ندي معلومې خوکه کومه ورځ يې څوک ترلاسه کړي نوخپل ژوند ته پرې دخوښۍ رنګ ورکولی شي

اوس ډېرځله دافکرکوم که يوه پېړۍ وروسته څوک زموږ د هديرې په سړدکومې ودانۍ دجوړولوهوډ وکړي اودتهداب لپاره زموږ قبرونه راوسپړي نوزماپه څېر ډېرو نورو زلمو له قبرونو به همدغه بې تعبيره خوبونه دطلايي مجسمو په بڼه ترلاسه کړي اوزمادژوند اوسنۍ شپې به يوورک شوی خيال اورنګينه افسانه وګڼي

# د ابدیت نغمه

ته ولي هره ورځ مادې ته مجبوروې چې ستا په فطري ښکلاافراروکړم ستادښکلادستايلولپاره زماهرشعرهغه ماشوم ته ورته دی چې نوی په خبرو راشي خوځوک نشي پوهولـــــــــی

ایازمادرنګ الوتې بڼه اوستاپه وړاندې چپه خوله ستادښکلاپه عظمت یوډول اقرارنــه دی؟

ستاښکلاخودسمندرپه غاړه دسهارراختلې لمرته ورته ده چې دهرچاسترګې برېښوي ددغه لمرنه که څوک مخ واړوي نودسمندرپه څپودوړانګوانعکاس بیاهم دهغه سترګې ښکلوي زه بیاهم درته وایم چې زه ستاښکلادستایلونه عاجزیـــــم

زمایوازینۍ هیله داده چې یوه ورځ مې ستا دښکلاځلانده وړانګې دیوې مهربانه مورپه څېرلکه یوبې نواماشوم په غېږکې ونیسي اواروامې په رنګینوګلپاڼوکې دوږمې په څېرونغاړي ګوندې وي ستادغه لطف مادا بدیت په نغموونازوي اوهلته مې په خواږه خوب اوده کــــــــړي.

# تلپاتي درد

ماغوښتل چې دخپلوملګرو له سترګوپټ اوغلی غوندي کوم سهار له دغه ښاره ووځم په دي دومره موده کې چې زه په دغه ښارکې د یو پردېس په څېراوسېیدم نو له هغوی سره دومره نږدې شوی وم ، چې په زړه کې مې هغوی ته بې له مینې اودرناوي بل هېڅ نه ځاېدل.
ځکه مې دښاره دوتلولپاره داسې وخت غوره وبللو چې دوی ټول زما دیاده بې پروا او یا اوده وي مانه غوښتل چې دبېلتون په دغه ترخو شېبو کې د هغوی په سترګود اوښکو او درد انځور وګورم اومینه یې په یوتلپاتې درد بدله کړم زه دې ویرې اخیستی وم چې هسې نه دځوانۍ دعمریوه زیاته برخه مې دهغوی د یادونو په ځنګل کې تېره شي.
خو ماچې له څه وېره لرله همداسې وشول.
د ښار له څلورلاړو د سهار په تیارو کې ووتم کله چې د لمرڅرک لومړۍ زرینې وړانګې په ښار ولګېدې نوزه دښار نه د وتلو په دروازه کې ولاړ وم اوګاډی مې د وتلو په انتظار وو په همدې شېبوکې مې هغه غږ واورېده چې ما د دغه ښار د ټولوغوره موسیقۍ ګڼله ته د دې ګاډي دهنداري شاته ولاړه وې اودځان په لوردې په ګیلمن انداز بلنه راکړه زه په لړزېدلوقدمونودرښکته شوم دځنګ ملګري مې درنګ په بدلون پوه شول هغه مهال دسیلۍ وهلې پاڼې په څېرمړاوی ستاخواته درغلم اود یو مجرم غوندې دې په حضورکې ودرېدم په ژړغوني اواز دې له نازکوشونډوخبره ووته.
زمادې زړه ذرې ذرې کړ
اوس راته وایې چې زه بل وطن ته ځمه
ژبه مې وچه شوه داسې مې حس کوله چې له پېښو مې ځمکه روانه ده اودسهار په لمرکې دماښیوغزیدلې سیورې په حسرت سره راته ګوري اود دواړوپه بې وسۍ اوښکې تویوي.
دواړودښارپه دروازه کې دبې وسۍ اوناپایه درد اوښکې تویې کړې اوښکې په سلګو اوسلګۍ په تلپاتې درد په یوه شېبه کې داسې زر واوښتې لکه دسمندرونو برا‌سونه چې هواته له ختوسره سم د باران په څاڅکو بدلېږي اوبیا ځمکې ته دیوې غوره ډالۍ په نوم راستول کېږي.
په سلګودې راته وویل
ته له دې ښاره یوازې ځې ؟

ماځواب درکړ.

هو !

نرګسي سترګې دې ښکته کړې خبرې دې له مينې اوغوصې په ډک انداز وغځولې نه دروغجنه....

تاله دغه ښاره ډېرځه يوړل خو يوځه دې بيا پرېښودل تاد دغه دغه ښارديوه بي وسوه انسان نه دزړه غلاوکړه خوپه بدل کې دې ورته يوتلپاتې درد ديادګارپه ډول پرېښود خوهيله ده چې ترقيامته دهمدغې امانت ساتنه وکړې.

زه دښارله دروازې ووتم خوترننه پوه نه شوم چې ته به ترځه وخته هلته ځای په ځای ولاړه وې اوڅومره سلګۍ به دې وهلې وي.

۱۳۸۸\۱\۱ نوروز، جلال اباد

# اغزنه لار

ماپه باربار درته ویل چي په ماپوري د زړه تړلو بې ځایه هیله مه کوه ماته هېڅکله هغه امانت مه سپاره چي ساتل يې د سرپه بدله کېږي ،زما په وجود کي لاهم د دغه پیاوړي احساس دراتوکېدوکومه نښه نه محسوسېږي تا ته به زما دژوند لارې اومنزلونه ښه معلوم وي زه دهغو زلمیو په څېرژوند نه لرم چي دسهاردلمرځرک سره دخوبه راپاځي په سترګويي دشپې خمار،دنازنخرواوغرورپردې غوړېدلي وي اودانګړېپه ګلونواوپستوچمنونوقدم وهي زه دهمدغي لمرځرک په مهال په دغه صحراکه دومره وړاندي تللی وم چي هغوی ته دیوه تورکوچني سيوري په څېرښکارېدم زماهرپل اوقدم په اغزودی زما دژوند لاری ډېري اغزني دي زما له پیلوپښوروانی ويني اوساړه یواځېني

اوسيلي د صحرا وږمواوشورماشورته معلوم دي هرقدم مي قدمونه له نااشنا کاڼوسره لګېږي اوپرلپسي تندیکونه خورم زما په سترګودځوانۍ دخمارپه ځای د خپل راتلونکي منزل دردونه خواره دي خولاهم نه پوهېږم چي داکوم نامریه ځواک دی چي تاپه واروارله ماسره په دغه اغزنه لاره تلوته مجبوروي.

ګراني !هیله کوم دخپلي دغي پرېکړې نه تېره شه پرېږده چي یوازې دلارې ګردونه اوصحرايي اوازونه راسره ملتیاوکړي کاڼي اواغزي راته هرکلي ووایي.

ستا قدمونه یوازې ددې لپاره دي چي دګلونوله پاسه کېښودل شي اوپاسته چمنونه يې ښکل کړي ستا نظربايد دصحرادسوزونکوسیلیواوناپایه فاصلوپه ځای دښایسته بڼونوپه وږمواودګلونوپه ځپوولګېږي.

زمالپاره یوازې همدابس ده چي سهاراوماښام په پټه دخپلي کلالوړوبرجونوته وخېژې اووړاندې په صحراکي دیوه پردېس دراتلولاروڅارې.

زه وعده کوم کچېرې په همدغه لاردخپلوارمانونومنزل ته ورسېدم نودهمغه منزل دګلابي هنداروګومرې ډيوه به ستادښکلاله وړانګوبلېږي بيابه ته راته د درد په ځای دميني اوښکلاسندرې وايې اومابه دخپلوزخمونودټکورلپاره دګيلمن ماشوم په څېرسرستا په غېږې کې ايښي وي.

# تنهايي

ماته خوتاويل چې له خپلوملګرو جداشه چې ژوند دې يوازې زماد رازاونيازپه نوم شي اودشپې په غلو او وېرونکو شېبوکې ستا زړه ته د خپلوخبروشات درېبچکاري کړم

ما ستا داغوښتنه ديوه سپېڅلي اسماني الهام اوامرپه څېرومنله اوپه يوه تورماښام بې له دې چې له ملګروسره څه مخه ښه وکړم په نامعلومه خواروان شوم دسيند په غاړه مې په هغه جونګړه کې پنه واخيسته چې يوازې دسيند د څپوشور په کې اورېدل کېده

نورنوپه همدغه وړه جونګړه کې ستا د خوږو خبرو په انتظاروم اوهيله مې دا وه چې په خپلو خبروکې د ميني شات راواستوې خوستادلفظونوباران ترننه ونه ورېده هره شېبه دانتظارپه پيالوکې د ميني زهر څښم خو دا نشم ويلی چې تا را سره جفا کړې ته زما

جونګړې ته نږدې د سیند په څپو کې پټه یې شپه ورځمې د دغه څپو نه
په خپله جونګړه کې څارې اوپه شورکې د یوې سپېڅلې مینې
ثناوایي

# اعتراف

زه ددغه بې ژبې ښارداورژبووینددیانو څه یم تابه دښارپه محفلونواوسالګروکې زمادژبې جوهرکوم وخت ضرورلیدلی وي زه چې چېرته خبرې کوم نوخلک زما ژبې ته ګوته په غاښ وي اودهغوالفاظوپه رنګینوکې فکرونه کوي کوم چې زه یې په خپلوخبروکې کاروم هغوی حتی زما دغږپه وړاندې خپل غږاوچتول هم یوډول ګناه اوبې احترامي ګڼي خوباوروکړه چې دا وړتیاپه ماکې یوازې هغه وخت وي چې ستا نه لرې وم اویاپه هغه محفل کې چې ته ماته مخامخ نه ګوري

کله چې له تاسره مخ شم نویوه ګونګي انسان ته ورته شم زماهغه جذبات داسې ساړه شي لکه باران چې په ځنګل کې لګېدلی اوروژني.

زه ستا په مخ کې داسې ځوړند سرناست وم چې دخپل زړه درزاهم نشم قابوکولی فقط لکه زما ژبه چې یوازې دڅکلواله وي اودخبروځواک نه لرې ماهرځل هڅه کړې چې ځان به ددغه چوپتیاله ژوندون نه ژغورم خوداسې اسانه هم نه ده، لکه چې تقدیرهم یوازې دهمدغه دوزخ لپاره پیداکړې یم زما دغږمینه وال که زما ددغه کمزورۍ نه خبرشي په غوندوکې زماخبروته غوږ نیول خو پرېږده چې په وهلواوټیلوبه مې له ستېجه راګزارکړي زما د دغه چوپتیااوکمزورۍ رازیوازې تاسره دی زه پوهېږم چې ته مې دهغې درنې چوپتیاپه اسراروا وسپېڅلتیا پوهوې کومه چې ددواړوترمنځ دلیدلوپه مهال حاکمه وي

خو زه اقرارکوم چې ددغه چوپتیا دبیان نه عاجزیم ماپه دغه چوپتیاکې نغښتې موسیقي ددې نړۍ په یوه سندره کې هم نه ده احساس کړې نوته ووایه چې څنګه یې اظهارکړم ؟

ددغې چوپتیا غلی سرود زماله بیان اوخبرودومره اوچت دی لکه یوماشوم چې دستور ورانیولو هیله لري
زه ددغه بیان له پاره نه یم پیدا شوی هیله کوم چې مایوازې دې ته پرېږدې چې همدغه چوپتیامې هره شېبه ووژني.

۱۳۸۷/ ۱۲/ ۱۳

# دشاتوپياله

هغوی ربښتياوايي چې دهرسترانسان ترشا يوه ښځه ولاړه ده چې يو ځوک دعظمت ترټولولوړوپوړيوته خېژوي .ماته يومهال ددي خبرې مانا ديوه سوليدلي انځورغوندې تته ښکارېده خوکله چې دنړۍ واکمن زمادزړه پاچاهي تاته وسپارله نوپوه شوم چې ددي خبرې مانادومره تته نه ده لکه څنګه چې ماپه ذهن کې انځورکړيي وه.

ستاپه خواږه غږيوې زمزمې دچوپتيااوتيارولږ دوزخ نه رابهرکړم اوهغه نړۍ ته يې ورسولم چې دښکلااوخوښۍ لمرکله هم پکې نه ډوبېږي.

تازماهيله ومنله اودډېروزاريووروسته دې نازکې شونډې په هغه سندره وخوځېدلې چې ماپکې خپل ژوند شيندلی وو کټ مټ لکه سهارنۍ وږمه چې دخوبه دراپاڅېدلې ګل سرې پاڼې خوځوي اوغلې زمزمې ته ورته غږکوي ماستا په غږکې درد اومينه دواړه حس کړل اودخپلې لومړۍ سندرې دلومړي اوريدونکي وياړدې راپه برخه کړ.

ستاسندريزاوازددې شاهدي ورکوله چې تراوسه دې په ژوند کې هم چاته سندره نه ده وېلې دايوازې ديوې مينې لومړي دردونه وو چې دخپل محبوب دخوښۍ لپاره دې دغه سپېڅلې ايثارته غاړه کېښوده اوزه دې دخپلونورولورينواومهربانيوتربار لاندې راوستم

.

هغه شپه چې تا پکې دلومړي ځل لپاره په خپلوزمزمو ونازولم اوس هم زما په ژوند کې يوه شېبه دهغې له ياده خالي نه ده ما ستا په زمزمو کې دلويديځ اوختيځ دټولوسندرغاړو دسوزاودرد غږونه حس کړل اواوس مې حال دې ته رسېدلی چې يوه موسيقي اوسرود هم زمالپاره ستاله زمزمې خوږنه دی خوکاشکې چې تادخپل غږدشاتودغه پياله زما دغوږونوله لارې زما په زړه کې نه وی اړولې زه له ترخوسره عادت وم مايوازې دويراودرد سلګۍ اوزګيروي اورېدلي وو اوددای نازکوغږونوله زمزموسره ناشنا وم فقط لکه ددښتې يوسترۍ اوستومانه تندې وهلی مسافرچې په يوه يخه چېنه وربرابر شي ماله دغه چېنې يوه لپه اوب

ه وڅښلې اودزړه تياره ګوټونه مې پرې رڼاشول.

له دې نه لويه قرباني به چېرته وي چې يوه نجلۍ دې په نيمه شپه کې دخپل محبوب لپاره دخپل زړه درزاپه لړزېدلي خودردونکي اوازچې ځوک پکې دوصال اوبيلتون رنګ

نشي حس کولی په یوه تل پاتې سندره کې وړاندې کړې او بیادې دخپل ژوند دغه لومړۍ سندره په سلګو بدرګه کړي.

۱۳۸۷\۱۰\۱۲

ننګرهارپوهنتون

# خړه لیکه

زما دبیلتون ترورو ستیو شپېبو پورې دې ته پام نه وو چې ته مې لالهانده حواس او سترې هیلې په دومره ژورنظرڅارې او دشاهین په څېر دې دافق له څنډو زما دزړه په ځمکه ټولې لورې ژورې ترڅارلاندې دي.

ما په دغه دښته کې دخپل ستومانو ونکې مزل په مهال چې هرقدم مې په کاڼواو اغزوکې وو یوازې دورک منزل لاروا ودښنو ته کتل او کله مې هم فکرنه کاوه چې دچادنظر زرینې وړانګې به دسهارد لمرڅرک غوندې زما په څېره څوشېبې خښې وي او په دښته کې به مې پاتې پلونه په دومره مینه اودرناوي ښکلوي . اوس ستا دمینې سپېڅلتیا هره شېبه په ما پسې له شانه چغې وهي دغه چیغې په ګرد جنه فضاکې دهیلواوزاریو په بڼه زما ترغوږونو رارسېږي او بیا دیوې ناپایه مینې په ترانو او سندرو اوړي.

خو په دې شېبوکې زما دبې وسۍ اوسیلي اودحسرت په ګردونولړلې اوښکې هم دهېرېدلو نه دي زه چې اوس هرڅوشاته دروګورم فایده نلري ځکه زماله ښنو او ګړندي تګه په هواکې دخاوروا وګردونو یوه لیکه پرته ده چې نور نودواړه لیدلو ته نه پرېږدي

# زماوینه په لحدکې

هغه په روغتون نا روغه پروت وود هرچا به یې چې په رنځوره بهه ، ښکلې ځوانۍ او له ژونده
په نا هیلو سترګو سترګې ولګېدې نو په زړه کې به یې خامخا دد رد یوه څپه حس کوله
ډاکترانو به هم ډاډ ورکولو چې که خدای کول روغېږې خو په زړه کې پوهېدل چې په دې نړۍ
کې یې وروستی شپې ورځې دي باید چې خوشحال و ساتل شي په لومړیو کې چې کله په
دغه مرګوني نا روغۍ اخته شو نو په کال کې به یې یو ځل وینه بدلوله خوورو ورو دغه موده
راکمېده څه موده وروسته شپږ میاشتو ته را غله هره میاشت به روغتون ته راته او وینه به یې
بدلوله خود وخت په تېرېدو خبره میاشتې او اونۍ ته ورسېده کټ مټ لکه په جال کې په
بندي مرۍ چې ورو ورو د جال لومې راټولېږي . په هغه هم د غسې دا جل جال ورو ورو
راتنګېده او دوینې بدلولو خبره یې یوې اونۍ ته را ورسېده ملګري ټولګې وال مې راته ویل
چې وینه ورته په کار ده او باید چې ددې اونۍ غمه یې وخورم ورسره لاړم په روغتون کې مې
دخپل ملګري سره پنځه سوه سي سي وینه ورکړه په داسې حا ل کې چې هغه مې و نه لیده
خو ملګري مې په ذهن کې د هغه پوره خبره انځور کړه
له وینې وروسته ایله دوه ورځې تېرې وې چې له ټولګیوال نه مې د هغه په اړه پوښتنه وکړه
خوله بده مرغه چې ډېر سوړ ځواب یې راکړ ((هغه موڅو ساعته مخکې خاوروته وسپاره
اوس یې د فاتحې لپاره ناست یو نور د جوړېدو نه وو ((
ما هم سوی اوسیلی وکړ.
له دې نه مخکې مې هم یو ملګری مړشوی وواو شمېره مې یې له تلفون نه لرې کړه له ځان
سره مې وویل
زماوینه هم ترګور او لحده ورسېده . د هغه له هډونو او وجود سره به خاورې شي زماوینه نور
زما نه ده د هغه شوه او له هغه سره یوې بلې نړۍ ته لاړه زه نه پوهېږم چې هغه به بیا زما سره
یو ځای شي او که نه ؟
او که یو ځای کېږي نو څه وخت به یې همد غه سرېټي ځای ته خواله ورځم !؟
نه پوهېږم ژوند اوس کله کله فکر کوم چې ژوند دورځې سیوری دی او په کله هم په یوه بهه
نه وي

**۱۳۸۸|۱۰|۱۸جلال ابادبنار**

# ښوونځی

دورځې په اوږدوکې به چې له کاره وزګارشوم نوکورته په رسېدوبه مې لومړی دمورجانې لاسونه ښکل کړل اوبیابه پاس بالاخانې ته وختم .دکړکۍ مخې ته دتوت غځېدلو څانګوته به مې کتل اودمخامخ غرونوشنې لمنې به مې ترنظرلاندې وې.
دطبعیت دغه منظرې زه له ځان سره داسې اوږدې کړې وم لکه یودنشې روږدی چې له خپلې نشې خونداخلي زه به په خیالونوکې پوره وړاندې تللې وم چې دبالاخانې دروازه به خلاصه شوه اوکوچنی وراره به مې مخې ته په موسکه خوله اوخندنۍ څېره مخامخ ودرېده دهغه په یوه لاس کې به کتابونه وو اوپه بل لاس به یې زه ځان ته ورجوخت کړم هڅه به بې کوله چې بې له څه مقدمې خپل کتابونه زما مخې ته وغوړوي بیا به یې دکړکۍ له پنجرې نه دڅانګورانیولوهڅه کوله خومابه ورته دکتاب څوجملې وویلې اوبیابه مې په زورځان ترې خلاص کړ.
هغه به چې کله زما په غېږکې څملاست نودخپل نوي ښوونځي غوږې به یې کولې اوپه وړه ژبه به یې په صفتونولګیاوو هرځل به یې ویل چې نوردښتوت ترونه لاندې سبق نه وایي اوچې مکتب جوړشي هلته به ځي.
یوه ورځ مازدیګرزه دبالاخانې په کړکۍ کې ناست وم چې هغه مې خواته راغی اوپه خندایې یوسپین کاغذي پاکټ راکړپاکټ مې پرانست دښوونځي دنوې ودانۍ دپرانېستې غونډې ته دښوونځي داداري له خوا زه هم وربلل شوی وم.
دوراره په تندي کې مې یوډول ځلاوهیله حس کړه مالیک ټول نه وو لوستی چې بیایې پوښتنه وکړه.
کاکا !معلم صیب ویل چې دکاکاسره دې یوځای راشه سبازه دوخته پاڅېږم دواړه به ورځو.
ماپه مینه ښکل کړاودتلودوعدې ورکولوسره مې هغه دومره خوشحاله کړلکه کومه غوره ډالۍ مې چې ورکړې وي سهارله کاروباره پاتې شوم دلمرله راختلووړاندې دبالاخانې دکړکۍ ترڅنګ کښناستم په دې انتظاروم چې لمرراوخېژي اوله هغه سره

یوځای ښوونځي ته لاړشم ناڅاپه مې وړاندې وکتل خوپه سترګومې باوررانغی دنوي ښوونځي ودانۍ دسکاره په څېرتوره ولاړه وه اواوس هم مړه لوګي ترې اوچتېدل زماپه سترګو هم تیاره وشوه لاندې ښکته شوم دورینداري کوتې ته ورغلم وراره مې اوده وو اوترڅنګ یې کتابونه خواره واره پراته وو.

۱۳۸۸\۱\۳

جلال اباد ښار

# يوه زولۍ ډګلابونو

هرسهاربه چې ښوونځي ته تلم نودهديرې په څنډه کې به دهمغه نوي قبرنه دتازه ګلابونوورېمه زماپه ذهن ولګېده اويوه شېبه به ورته تم شوم.
له قبرنه غرني بوټي اويوه شنه اوسپنيزه پنجره تاووه اوپه منځ کې به يې په بوټو اووانښودتازه ګلابونوپاڼې خورې وې چې ټولوبه يورنګ درلود .په ګلابونولاهم دغرني نسيم څاڅکي پراته وو اونرم باد به يې پاڼې خوځولې خولا په دې نه پوهېدم چې درنګارنګ ګلابونودغه زولۍ په دې قبرڅوک غوړوي په همدې فکرونوکې مې ډېرې ورځې تېرې کړې.
هرسهاربه مې دقبرله پنجرې نه يوتازه ګلاب راواخيست اوپه لاروبه مې دښوونځي تردروازې پورې پزې ته نيولی وو
ماپه دغه ګلابونوکې هره شېبه هره شېبه دکومې ځوانيمرګې ميني ورېمه حس کوله په همدې ورکه پسې مې دکلي ټول ښځينه ولټول اوپه همدغه رنګونوپسې مې هره خوا ورېې سترګې وغړولې خوهېڅ لاس ته رانه غلل يوازې زموږ دکاله په انګړکې ددغه ډول ګلابونوډ کې سرې ولاړې وې.
يوه ورځ سهاروختي ددغه رازمعلومولوپاره هديرې ته لاړم اوهلته په غرنيوواښوکې غلی ودرېدم.
چې په توروجاموکې پټه نجلۍ غلې راغله دسترګوپه رپ کې يې يوه زولۍ ګلابونه دشنې پنجرې له څنګه په قبروشيندل اوپه منډه لاړه.
هغې بياشاته هم را ونه کتل لاړه اوزموږکورته ننوته زړه مې پوره ارام شو.
ايله وپوهېدم چې دهمدغه زلمي دمرګ په ورځ چې هغه يې دجګړې له ډګره ټپي ټپي راوړ ولې زما دمشرې خورجانې سترګې له ژړاتکې سرې وې